# کتاب پېژندنه

---


| | |
|---|---|
| د کتاب نوم | زموږ د باچا خبرې، لومړۍ برخه |
| ټولونه | ډاکتر محمد یحیی وردک |
| خپرندوی | د افغانستان معلوماتي مرکز، افغانیک |
| د ټولنې ویبپاڼه | www.afghanic.org |
| د خپرونو لړ | شپږم |
| کمپوز | افغانیک، جرمني |
| چاپشمېر | ۱۰۰۰ ټوکه |
| چاپکال | ۲۰۰۸ میلادي، ۱۳۸۷ لمریز |
| چاپځای | بن ښار، جرمني |
| ډاونلوډ | www.afghanic.de/bk |
| بیه | دوه ایرو |

# فهرست



# سريزه

تاسې د افغانستان او سيمې په تاريخ کې داسې يو څوک نوموړی شی، چې ستاسو لپاره سرمشق او د مثال نمونه وي؟

اته کاله مخکې يو ژورنالست د خپلې مجلې لپاره په يوه مرکه کې له ما څخه پورتنۍ پوښتنه وکړه. *

ما د دې پوښتنې په ځواب کې د عبدالغفار خان (باچا خان) نوم واخيست. که څه هم په هماغه وخت کې ما باچاخان ډير نه پېژانده او نه مې د ده ليکنې او نه مې ډېر څه د ده په هکله لوستلي وو، هغه هم د مهاتما گاندي په هکله د کتابونو له لارې.

خو په دې وروستيو کلونو کې هر څومره چې زما معلومات او مطالعه د دغه سړي په هکله زياتيږي، هغومره زما علاقه او مينه ورسره زياته شوې او لانوره هم ډيريږي.

زما په نظر د غفار خان د شخصيت لويوالی او ارزښت هم په دې کې دی، چې دی زموږ د خلکو بنسټيزو ستونزو لکه تشدد، بدل، بې تعليمي، افراط، بی ځايه سيالي او په خپل دين ناخبري ته ځير او د هغو سره يې عملي مبارزه کوله. څرنگه چې په موږ کې لا اوسمهال هم دغه شيان له منځه نه دي تللي، نو له همدې کبله د باچا خان لارښودنې او

---

*دغه لنډه مرکه د Ost-Westliches Journal, 3/2000 کې چاپ شوې ده.



ژوند نه يوازې تاريخي ارزښت لري، بلکې زموږ د نن ورځې د ستونځو د حل غوره لارې هم دي.

نو ځکه د ده خبرې زما د زړه خبرې هم دي. له همدې کبله دغه خبرې تاسو ته هم وړاندې کوم، کيداى شي، چې لږ تر لږه ځينې خبرې به ستاسو د زړونو خبرې هم وي.

که داسې وي، نو خداى وکړي چې په عملي کولو سره يې د خپل ځان، خپلو خلکو او خپل ملک په ګټه ترې ګټه واخلو.

د دغه کتاب د ليکلو لپاره زه د دغو ښاغلو څخه ډېره مننه کوم، چې خپل کتابونه يې ماته په اختيار کې راکړل: ښاغلى مبارز څاپى، ښاغلى ډاکټر رمضان سعادت، ښاغلى هدايت الله بنګش ، ښاغلى شاه جهان کاکاخيل. د ښاغلى محمد رضا خان نه مننه چې يو زيات شمېر عکسونه يې راکړل. او د ښاغلي نسيم صابر هم منندوى يم، چې په ليکدود کې يې زما لاسنيوى وکړ.
زما هيله دا ده چې د باچا خان نورې خبرې او د ده په هکله د نورو خبرې هم راټولې او هېوادوالو ته يې وړاندى کړم.

يحيى وردک

بن ښار، جرمني، نوامبر ۲۰۰۸ م کال



# د باچا خان ارمان

زه يو خوب وينم، يو لوی ارمان لرم.

زما د ولس حالت د صحرا د هغو گلونو په څېر دی، چې صحرا کې زرغون شي، څوک يې غم نه خوري،

يو څو ورځې پس مړاوې شي او بيا د خاورو سره خاورې شي.

زه غواړم چې زما ولس د يو بل سره په غمونو او ښادۍ کې شريک وي.

زه غواړم چې زما ولس د قام د خوشالۍ لپاره د برابرۍ په بنياد د يو بل سره اوږه په اوږه کار وکړي.

زه غواړم چې دوی خپل ملي رول ولوبوي او الله تعالی او بشريت ته د خدمت لهلارې، د نړۍ د نورو ولسونو په قطار کې خپل مناسب ځای ونيسي.

Eknath Easwaren. Nonviolent soldier of Islam, ۷۷مخ،




## اسلام

دا زما پخه عقیده او باور دی.

چې اسلام **عمل**، **یقین او محبت** دی.

مسلماني بې مطلبه شي. قران دا خبره ښه صفا کړی ده چې

په یو الله باور لرل او نېک **عمل** د انسان د نجات د پاره کافي دي.

*ایکنات سوارن، حضرت باچا خان-ژوند او فلسفه، ۱۱مخ*

## رښتینی مسلمان

رسول الله صلی الله علیه وسلم موږ ته دا سبق راکړو، چې هغه کس

رښتینی مسلمان دی، څوک چې د الله تعالی د مخلوق د خوشالۍ او ګټې

لپاره کار کوي.

په خدای پاک د عقیدې دا غوښتنه ده چې سړی د انسانانو سره مینه

وکړي.

*ایکنات سوارن، حضرت باچا خان-ژوند او فلسفه، ۹۹مخ*





## عدم تشدد، یوه نوې عقیده؟

زما په خیال پښتون یا مسلمان لپاره د عدم تشدد د فلسفې خپلول کومه د حیرانتیا خبره نه ده. دغه خو یوه نوې عقیده نه ده.

دا خو څوارلس سوه کاله پخوا د پیغمبر له خوا تل په مکه کې تطبیق شوې او د هغه وخت څخه را پدیخوا، د هغو ټولو لخوا په کار اچولې شوې ده، چې ځان د ظلم څخه خلاص کړي.

خو موږ هېره کړې وه او کله چې ګاندي جي زموږ پر مخکې واچوله، موږ فکر کوو، دغه یوه نوې عقیده ده.

*Eknath Easwaren. Nonviolent soldier of Islam,* ۱۰۳مخ،







# مشال

پښتانه ډير مضبوط قوم دی او گټه کولی شي.

خو په پښتنو کښې دوه کمزورتياوې موجودې دي:

- يوه دا چې بې اتفاقه دي
- او دويم دا چې پيسې ته ټينګ نه دي

که دا دوه کمزورتياګانې ترې ووځي،

نو د دنيا هيڅ طاقت پرې غلبه نشي کولی.

*پښتون مجله، اتمه ګڼه، ۱۹۹۲ م، پېښور، ۷۳مخ*





# د قوم ملګرتیا

موږ خو د خدای د پاره لګیا یو، د دې قوم خدمت کوو.

که قوم زموږ ملګرتیا وکړه، نو دوی به آزاد شي نو که زموږ مخالفت یې وکړو نو دوی به برباد شي.

ولې چې بغیر د قوم د امداد نه موږ خپل منزل ته رسېدی نه شو.

*زما ژوند او جدو جهد، ۵۳۹ مخ*



# زما د ولس کمی

زما د ولس تاریخ د ګټو او د مړانې د کیسو څخه ډک دی.

ولې دلته کمي هم شته،

هغه دا چې د ډیرو قربانیو ورکولو نه وروسته هغه څه چې تر لاسه شوي دي، هغه خپلو کښې د دشمنیو او ذاتي حسد په وجه بایلل شوي دي.

دوی ته تل خپلو کښې د بې اتفاقۍ په وجه تاوان رسیدلی دی.

بهرني قوت په دوی بریالی شوی نه دی.

ایا څوک د جنګ په میدان کې د دوی مخه وهلی شی؟

*ایکنات سوارن، حضرت باچا خان-ژوند او فلسفه، ۵۵مخ*

# خپل کور ودان کړئ

ای پښتنو !

ستاسو کور وران شوی دی.

راپاځی او دا وران کور بیا ودان کړئ

او دا خبره یاده لرئ چې تاسو د یو باتور نسل سره تعلق لرئ.

*ایکنات سوارن، حضرت باچا خان۔ژوند او فلسفه، ۴۰ مخ*

# مایوسي

زه نه مایوسه کېږم.

مایوسي په هغه کسانو باندې راځي، چې د ځان د پاره کار کوي.

څوک چې د خپل غرض او خپل مطلب د پاره کار کوي.

زه خو د پښتون خدمت د خدایي خدمتګار په حیث کوم.

زه به ولې مایوسه کېږم.

*- د باچاخان سره د غني خټک مرکه: حضرت باچا خان، ژوند او فلسفه کتاب، ۳٤۱ مخ*

### موږ څه غوړو؟

موږ یو نوم غواړو

په دې کور کښې یوه خونه غواړو

خو غواړو چې موږ په خپله د دې خونې څښتن او جوړونکي وو

Rajmohan Gandhi. Ghaffar Khan: non-violent Badshah of the Pakhtuns مخ ۲۴۳

## کار کول

د دې ټولو خبرو نه موږ له سبق اخیستل په کار دي او هر کار چې کوو نو محض په جوش او جذباتو یې ونه کړو. بلکه د هغې په هر پهلو باندې په ښه شان سوچ او غور وکړو

او که چیرې د هغې د پاره د هر قسم قربانۍ او تکلیفونو ته تیار نه یو،

نو شروع یې نه کړو.

*زما ژوند او جدو جهد، ۲۸۶ مخ*

# صبر

زه تاسو ته يوه داسې وسله درکول غواړم، چې پوليس او پوځ به ستاسو سره څه کولې نه شي.

دا زموږ د پيغمبر وسله ده. دا د صبر او استقلال او په نېغه لاره د تلو وسله ده. د دنيا يو قوت هم د دې طاقت مخه نه شي نيوی.

چې تاسو کله خپلو کليو ته ورځی، نو خپلو کليوالو ته ووايئ، چې دلته يو د الله تعالى فوځ دی، چې وسله يې صبر ده.

خپلو وروڼو، تربورانو او کليوالو ته ووايئ، چې د الله تعالى په دې فوځ کې شامل شئ او په دې لاره کښې ټول تکليفونه وزغمی.

که تاسو صبر خپل کړو، نو تاسو به بريالي وئ.

*ايکنات سوارن، حضرت باچا خان-ژوند او فلسفه، ۲۲۳مخ*





# د حکومتونو نړېدل

زه دلته تاریخ نه بیانوم، صرف دا خبره ښکاره کوم چې د دې څه وجه ده چې پښتون لوی لوی حکومتونه جوړولی شول خو ټینګولی یې نه شول؟ د دې وجه دا وه، چې په پښتنو کی اجتماعي ژوند، قومیت او اتفاق نه و.

*زما ژوند او جدو جهد، ۹ مخ*

## ظالمان

رښتیا خبره دا ده چې ظالمان بهادران نه وي،

ډېر بزدله او بیمانه وي.

بهادر سړی هیچرې په چا ظلم نه کوي.

*زما ژوند او جدو جهد، ۲۸ مخ*





# د ماشوم والی عادتونه

په ماشوم والي کښې چې څه عادتونه په بچو کښې پیدا شي،

نو چې بیا غټ شي، نو هم پکښې وي

او په ډېره مشکله د هغو بدو عادتونو نه خلاصیدی شي.

*زما ژوند او جدو جهد، ۱۸ مخ*







# کاميابي

د کاميابۍ د پاره اجتماعي تحريک او قرباني په کار وي. نو د چا په زړه کښې چې دا قسم جذبات او احساس پيدا کېږي هغوی له په کار دی چې په قام وګرځي او ځان سره د دې قسم د احساس خاوندان ملګري پيدا کړي او په ګډه د ظلم، زياتي او بې عزتۍ مقابله وکړي.

چې په قام کښې داسې ډله پيدا شي او قوم تنظيم کړي

نو کاميابي حاصلېدی شي او هغه قام بيا څوک غلام ساتلی نه شي.

*زما ژوند او جدو جهد، ۲۸ مخ*



# سخات خيرات

زه د عربو په ټولو ملکونو کښې ګرځېدلی يم. ما هلته حتی په مکه معظمه، مدينه منوره، نجف او کربلا کښې هم چېرې دا د سخات او خيرات طريقه نه ده ليدلې.

حال دا چې هلته دا طريقه ده، چې مړی او شی، خلک خبر شي، بيا جنازه جومات ته راوړي هلته يې جنازه او شي.

د دعا نه پس وارثان خپل مړی د ښخولو د پاره مقبرې ته يوسي او نور مسلمانان خواره شي.

دا اسلام خو موږ ته د عربستان نه راغلی دی،

خو خبره دا ده چې دا قسم عادتونه په موږ کښې خود غرضو خلکو پيدا کړل.

*زما ژوند او جدو جهد، ۴۰ مخ*





# خيرات او ذکات

اسلام چې خيراتونه او ذکاتونه واجب کړي او لازم کړي دي، په هغې کښې لوی راز دی. دا چې زموږ خوږ رسول ص وايي چې «صدقه بلا رد کوي».

دا بلا تاسو پېژنئ دا خو د غريب او امير ترمينځ نفرت نه بلا ولاړېږي.

نو چې شتمن خلک د بې وزلو پوښتنه وکړي، دهغوی سره د مصيبت په وخت کښې مرسته وکړي، نو د غريبانو د خپلو اميرانو سره مينه محبت پيدا شي او د بلا مخه ونيول شي.

*زما ژوند او جدو جهد، ۴۲ مخ*

# د انسان کمزوري

انسان هم يو عجيبه څيز دی. څه وخت چې کمزوری شي او همت بايلي نو بيا د خپلې کمزورۍ او بې همتۍ د پټولو د پاره قسماقسم حيلې او حوالې لټوي.

*زما ژوند او جدو جهد، ۲۸۵ مخ*



# د قومونو راويښول

پښتون يو ژوندی قوم دی. د قوميت او قربانۍ ماده هم پکښې شته، خو راويښول غواړي. قومونه خو تش په ګُف او چُف نه رابيداريږي.

د قومونو د ژوندي کولو او بيدارولو د پاره داسې کسان په کار دي چې بی غرضه وي، ديانت دار وي، ايماندار وي او د خدای د پاره خپل قام خدمت ته تيار وي. چې داسی کسان په کوم قام کښی پيدا شي، نو د هغوی په کوښښونو هغه قام کښی مينه، محبت، همدردي، ورورې او عزيزولي پيدا شی. هغه قام اباد شي.

موږ بې همتو او خودغرضو خانانو، ملايانو او باباګانو تيارې ته کښېنولي يو، ځکه خو زموږ دا حال شو.

*زما ژوند او جدو جهد، ۶۷ مخ*



## د خلکو پېغورونه

زما خپلوانو او دوستانو ډېر راته ووې چې ولې پياده ځې،

دا خلک به څه وايي؟

موږ د خلکو د پېغورونو له کبله ډېر غلط کارونه کوو.

ما ورته وويل چې زه د خلکو خبرو ته نه ګورم، کار ته ګورم.

که کار درست وي، خلک چې هر څه وايي زه به يې کوم

او که کار غلط وي، نو که خلک هر څه وايي زه يې نه کوم.

*زما ژوند او جدو جهد، ۱۵۸ مخ*

## خراب عادت

افسوس په دې دی چې موږ سره څوک ښه سلوک کوي،

هغه ته نېغ يو او چې څوک مو سر په ډنډه وهي

نو هغه ته ټيټېږو او دا ډېر خراب عادت دی

او موږ ته دا سې عادتونه پرېښوول په کار دي.

*زما ژوند او جدو جهد، ۲۴۰ مخ*





# خپل مذهب په پردۍ ژبه

د هندوانو او مسلمانانو مذهب په بله ژبه کښې دی. د هندوانو مذهب په سانسکريت کښې دی.

هندوان په هغه نه پوهېږي او زموږ مذهب په عربي کښې دی او موږ په عربي نه پوهېږو.

*زما ژوند او جدو جهد، ۲۸۳ مخ*







# دا کار کولی شم او دا نه!

نو چې هر کله موږ خپلې کمزورۍ د خدای نه پټولی نه شو ، نو په کار ده چې د خلکو نه یې هم پټې نه کړو.

او چې کوم کار کولی شو په جار ووایو چې دا کولی شم او چې کوم کار نه شو کولی په جار ووایو چې دا نه شم کولی.

او دا ونه کړو چې یو ښه کار دی چې زما یو بل ورور لګیا دی کوي یې او هغه کار زه کولی نه شم.

نو موږ له د هغه امداد په کار دی، مخالفت یې په کار نه دی.

او پخپله ډله او قوم کښې اختلاف پیدا نه کړو او په ځای د ډاډ ورکولو په هغه قسما قسم الزام ونه لګوو او هغه ته مشکلات پیدا نه کړو.

*زما ژوند او جدو جهد ، ۲۸۷ مخ*





# عزت

د هر سړي خپل عزت په خپل لاس کښې دی
او که هر سړی خپل خواهشات او ضروریات قابو کړي،
نو همیشه به ارام، خوشاله او عزتمند وي.

*زما ژوند او جدو جهد، ۳۰۰ مخ*







# کمزورتیا

پښتنو کښې دا ډېره لویه کمزورتیا ده، چې چېرته لاړ شي او چا سره واده وکړي نو خپله ژبه ترې پاتې شي.

زموږ سره په سرحد کښې په زرګونو هندوان اوسي، هغوی هغه خپله ژبه هېر کړې نه ده، پنجابي يې هم زده ده او زموږ ژبه یې هم زده کړې ده.

دا کمزوري صرف په موږ پښتنو کښې ده.

*زما ژوند او جدوجهد، ۳۰۱ مخ*

# قوم او ژبه

حقیقت دا دی چې په دغه وخت په پښتو کښې هیڅ نه وو او نه پښتو د چا یاده وه او پښتون قوم دومره ناپوهه، نادانه و، چې دا خپله ژبه ورته سپکه ښکارېده.

او چې کوم قوم ته خپله ژبه سپکه شي نو هغه سپک شي، او چې خپله ژبه ترې ورکه شي نو ورک شي.

*زما ژوند او جدوجهد، ۳۳۴ مخ*



# ورور وژنه

ای پښتنو ورونو

یو کافر خپل کافر ورور نه وژني.

تاسو چې ځان ته مسلمان وایئ بیا ولې یو پښتون بل پښتون وژنئ؟

او نه چری یو فرنګی پخپل قوم مخبری کوئ او د هغوی ملګرتیا کوئ او

نه چری یو هندو د خپل هندو برخلاف نا حقه او د دروغو شاهدی کوي

او نه د خپل هندو ورور د شرمولو او د بې عزتۍ کوشش کوي.

خو ای پښتنو ورونو بیا ولی تاسو په ناحقو شاهدو د یو بل بې عزتي او

شرمولو پسی روان یئ.

لږ خو د خدای نه وبرېږئ او شرم وکړئ.

*زما ژوند او جدو جهد، ۳۱۶ مخ*

# دعا

موږ چې ځان ته مسلمانان وایو او پښتانه یو ، موږ دې خپل پښتون مسلمان وررور وژنو ، شرموو او مخبری دې پرې کوو.
دعا وکړئ چې موږ له خدای پاک پوهه او علم راکړي
او زموږ په زړونو کښې الله تعالی مینه او محبت، وروولي، عزیزداري، قامولي او اتفاق پیدا کړي.

*زما ژوند او جدو جهد ، ۳۱۷ مخ*

# لار ښوونکی؟

خلک وایي پښتون ترقي ونه کړه په ورانو لارو روان شوی دی.
لیکن حقیقت دا دی چې پښتنو ته چا سمه لار ښودلې ده؟
چا د ورانو نه منع کړی دي او دوی منع شوی نه دی؟
هی افسوس د نورو قومونو په شان د دوی غمخور نشته؛
د دوی شپون نشته ځکه خوېې شرمښان خوري او ماتوي.

*زما ژوند او جدو جهد ، ۳۱۷ مخ*





# يهود او فلسطنيان

په فلسطين کښې يهوديانو ښکلې ښکلې نوي کلي، ښارونه او باغونه جوړ کړي دي او لګيا دي جوړوي يې،

ليکن مسلمانان يې لا هغه شان په غفلت کښې پراته دي او د امام مهدي صاحب ته په انتظار کښې دي چې موږ به پخپله څه نه کوو هغه به راشي او هغه به راله هرڅه وکړي.

دوی دومره بې علمه او بې خبره دي چې امام خو پرېږده چې پيغمبر راغلی دی او خپل قوم ورسره ملا تړلې نه ده نو پيغمبر کامیابه شوی نه دی.

*زما ژوند او جدو جهد، ۳۲۷ مخ*

## د قوم ترقی

په جیلخانه کښې ما د خپل قوم په حالاتو باندې په ښه شان سره غور کړی و. زه په دې نتیجه ورسیدم چې په دنیا کښې هیڅ قوم بغیر د خپلې ژبې نه ترقي کولی نه شي او په هغوی کښې علوم او فنون پیدا کېدای نه شي. ما دا اراده کړې وه چې ضرور به یوه رساله په پښتو کښې د خپل قوم د پوهولو، د دنیا د حالاتو نه خبرولو او د خپلې ژبې طرف ته د مایل کولو (مخ کولو) د پاره جاري کوم او د دې کوشش به هم کوم چې انجمن په خپله ژبه کښې د بچو د پاره د ابتدایي تعلیم انتظام وکړي.

*زما ژوند او جدو جهد، ۳۳۳ مخ*

## ټوپک که قلم؟

نن ورځې د پښتنو لپاره د ټوپک ضرورت نشته دی،

بلکه د قلم ضرورت دی.

ولې چې زمونږ د ملک آزادي به په ټوپک نه وي، بلکه په قلم به وي.

*باچا خان لیکونه، لومړی برخه، ۴۳ مخ*





# امان الله خان او انقلاب

په پښتنو کښې ډېر بادشاهان تېر شوي دي لیکن د پښتنو ښځو، نرو چې ځومره مینه او محبت د امان الله خان سره ؤ هغه بل بادشاه سره نه و.

امان الله خان به وې چې زه د پښتنو انقلابي بادشاه یم او د هغه دا خبره بالکل رښتیا وه چې هغه په پښتنو کښې یو عجیبه انقلاب پیدا کړو.

انقلاب یو سیلاب وي چې راشي نو اوده خلک یوسي

او ویښ ترې فایدې اوچتې کړي.

*زما ژوند او جدو جهد، ۳۴۱ مخ*



# په دورو کښې د باچا خان لومړنی تقریر

پښتنو ورونړو !

موږ ستاسو ورونړه یو ، ستاسو خدمتګار یو ، ستاسو خدمت له راغلي یو. راځئ دا خپل وران کور جوړ کړو.

تاسو لږ دې دنیا ته وګورئ که علم مو نشته نو سترګې خو مو شته. د دنیا خلک او قومونه اسمانونو ته وختل او موږ په مځکه پاتې شو.

هغوی چې زموږ په شان بنیادم دي، موږ ورته لاس نیولی دی. چانه دانې غواړو چا نه پیسې غواړو. موږ له خدای د جنت په شان ملک راکړی دی، د دولتونو او نعمتونو نه ډک دی او زموږ پکښې څه حال دی؟

د جوارو ډوډۍ نشته چې په مړه ګېډه یې وخورو.

هغوی ولې اباد شول؟ او موږ ولې پاتې شوو ؟

...





...

هغوی کښې ورورولي ده، قام ولي ده او اتفاق دی.

په موږ کښې پرې دي جمبې دی، بغض دی، کينه ده، نفاق دی.

دا نن دنيا د قام ولۍ دنيا ده.

که قوم شوئ، نو دنيا به مو هم آباده شي او ستاسو آخرت به مو هم آباد شي.

*زما ژوند او جدو جهد، ۳۵۷ مخ*



# سياسي شعور

سياسي شعور په يو قوم کښې د اسمانه نه راځي

او چې په کومو قومونو کښې د سياسي شعور خلک پيدا شي نو خپل

قوم پسې وګرځي، هغوی کښې سياسي شعور پيدا کړي.

مسلمانانډېر ښه قوم دی خو په هغوی کښې داسې خلک تر اوسه پورې

پيدا شوي نه دي.

تاسې د هندوانو، مسلمانانو دې ليډرانو ته فکر وکړئ.

د هندوانو مشران او ليډران قوم پرست دي

خو د مسلمانانو مشران او ليډران خان بهادران او خان صاحبان وي.

*زما ژوند او جدوجهد، ۴۲۷ مخ*

# قامولي

ای ورونو !

نن د قامولۍ دنيا ده. تاسی وينئ چې کوم قومونو کښې قامولي او
وروولي راغلې ده نو هغه آسمان ته وختل او اباد شول.

دا موږ هم يو قوم يو، نو دا موږ ولې پاتې شو؟

دا موږ ځکه پاتې شوو چې موږ کښې قامولي، وروولي، مينه محبت او
اتفاق نشته.

نو زه تاسو له ځکه راغلی يم چې تاسو زما قام يئ خو تاسو خپله ژبه،
پښتونولی، تمدن او ټول څيزونه پرېښي دي تر دې چې لنګونه مو وهلي
دي.

دا هم درته وايم چې يوه مرغۍ د سيل نه جدا شي نو هغه ورکه شي.

*زما ژوند او جدو جهد، ۴۳۸ مخ*

# بد نصیبه قوم

ما دی خپل بد نصیبه قوم ته کتل چې اول خو د دوی د خدمت څوک نه وي
او که څوک یو نیم پیدا هم شی
نو څوک د خدمت موقع نه ورکوي.

*زما ژوند او جدو جهد ، ۴۵۳ مخ*

# نفاق

زما یقین دی چې کوم قوم کښې نفاق او ډلې وي هغه خپل منزل ته
رسیدی نه شي
او نن چې موږ غلامان یو د دې وجه نفاق دی او پرې جنبې دي.
زما د ډله بازو او نفاق نه ډېره کرکه کېږي.

*زما ژوند او جدو جهد ، ۴۴۷ مخ*

# د ونې مثال

موږ یو قوم یو او د یو بابا اولاد یو.

زموږ مثال د یوې ونې دي چې دې کښې ډېرې څانګې وي خو مونږ یې یو وي او چې څوک د هغې ونې یوه څانګه پرې کوي نو د هغې ونې سوري ته نقصان رسي. او که د هغې ونې مونږ وچ شي نو ټولې څانګې یې وچې شي.

نو نن ورځې پېرنګیان لګیا دي دغه څانګې ورو ورو پرې کوي. تاسو وېښ شئ که دغه څانګې ختم شي نو ستاسو بچي به په نور پاتې شي او د سرسوري به یې ورک شي او که چېرې دغه مونږ وچ شو نو دغه ټولې څانګې به یې وچې شي، یوه به هم پاتې نه شي.

*زما ژوند او جدو جهد، ۴۵۵ مخ*

# یو قوم شئ

زه تاسو ته وایم چی دښمن لګیا دی، تاسو ورکوي او په دې کوشش کښې دی چې دا مونږ وچ شي. که تاسو نه دا مونږ وچ شو نو بیا به ورک شئ.

پاڅئ !

دا خپل کور جوړ کړئ. دا بېل بېلوالی پرېږدئ یو قوم شئ.

که یو قوم شوئ نو ستاسو دنیا به هم اباده شي او اخرت هم.

*زما ژوند او جدو جهد، ۴۵۶ مخ*

# خدايي خدمت

موږ پښتانه خدايي کار او خدمت هغه کار او خدمت ته وايو چې بې د کومې طمعې، غرض او اجرت نه د خدای د پاره کوو او خدای خو خدمت ته ضرورت نه لري،

د خدای د مخلوق خدمت د خدای خدمت دی.

*زما ژوند او جدو جهد، ۳۵۶ مخ*

# ښځې

بغیر د ښځو نه یو قوم ترقي کولی نه شي.

ولې چې زموږ د کور او بچو ټول پرورش د هغوی په لاس کښې دی

او زموږ د ګاډي چې کومې دوه پایې دي یو سړی او بله ښځه ده.

نو تاسو په خپله خیال وکړئ چې یوه پایه پنچر وي

نو ګاډی به څنګه لاړ شي؟

*زما ژوند او جدو جهد، ۴۵۷ مخ*



# خدايي خدمتګاري

خدای ته د خدمت ضرورت نشته، د خدای خدمت د هغه د مخلوق خدمت دی او د خدای مخلوق یوازی مسلمانان نه دي، ټول د هغه مخلوق دي. که هندو دی که سک دی که عیسایی دی زموږ فرض د دنیا نه ظلم ورک کول دي او مظلوم د ظالم نه خلاصول دي.

موږ به د هغه قوم او حکومت مخالفت کوو چې څوک د خدای په مخلوق ظلم کوي، که ظالم زموږ ورور او مسلمان هم وي.

بله دا چې زموږ خدمت به د خدای د پاره وي، د څه غرض د پاره به نه وي.

موږ له چې څوک څومره تکلیف راکوي، زور زیاتی راباندې کوي،

موږ به بدل نه اخلو، بلکه صبر به کوو

او د هغه سړي، قوم یا حکومت د پوهولو کوشش به کوو.

*زما ژوند او جدو جهد، ۴۵۷ مخ*





# د تحریک مقصد

دا تحریک زموږ د وروروليۍ او قاموليۍ تحریک دی او
موږ دا کوشش کوو چې د ټولو پښتنو يوه ورورولي او قامولي جوړه کړو
او د دوی د زړونو نه بغض، کينه، تربګني او دښمني ليرې کړو.
چې اتفاق پکښې پيدا شي، محبت او همدردي پکښې پيدا شي
او يو قوم شي.

*زما ژوند او جدو جهد، ۴۵۸ مخ*







# ستاسې ملک

ای ورونو !

که یو قوم شوئ، نو تاسو له خدای داسې ملک درکړی دی

چې د دولتونو او نعمتونو نه ډک دی. خو ستاسو د بی اتفاقۍ په وجه

پرې نور خلک مزې کوي او که تاسو یو قوم شوئ نو ستاسو ملک بل

څوک خوړی نه شي.

ستاسو دنیا او اخرت به اباد شي او د داسی ملک چې دې کښې به یو

سړی غریب پاتې نه شي، ټول به خانان شي.

*زما ژوند او جدو جهد، ۴۵۸ مخ*

## بد قسمته قوم

هغه قوم دنیا کښی د بر بد قسمته وی چې هغوی کښی داسی خلک پیدا

شی چې پخپله خو د قوم او ملک د خدمت د پاره تیار نه وی

او چې څوک پکښی د خدمت د پاره پیدا شی نو هغوی خدمت ته نه

پر بږدي. *زما ژوند او جدو جهد، ۵۰۰ مخ*

# زموږ ملک

دا ملک خدای موږ له راکړی دی او دغه شان خدای هر یو قوم له یو ملک ورکړی دی.

د دې لپاره چې هغوی او د هغوی بچي پرې آباد شي. ملک خو زموږ دی خو اختيار يې د بل دی او دغه وجه ده چې زموږ بچي وږي تږي او بربنډ دي او مزې پرې نور خلک کوي.

غلامي د خدای لعنت دی او موږ له د دې لعنت نه ځان خلاصول په کار دي او دا به هله وشي چې موږ کې قام ولي، ورورولي، اتفاق او مينه محبت پيدا شي.

زه اميد کوم چې تاسو به زما په دې خبرو غور او فکر وکړئ. که دې کښې يوازې زما فايده وي نو مه يې کوئ او که دې کښې ستاسو د دنيا او اخرت ګټه وي نو عمل پرې وکړئ چې تاسو آباد شئ او ستاسو بچي آباد شي.

*زما ژوند او جدو جهد، ۵۰۶ مخ*

# اصلي مطلب

موږ هم یو قوم یو . موږ له هم د خپلې آبادۍ او ترقۍ د پاره څه جدوجهد په کار دی او که ټول عمر په نیستۍ او غلامۍ کښې پراته یو ،
نو ورک به شو .
زموږ اصلي مطلب قوم کښې مینه، محبت، قامولي، وروروليي او اتفاق دی.

*زما ژوند او جدوجهد ، ۵۱۰ مخ*

# صابران

خدای پاک وایي چې زما نه امداد په صبر او اتفاق سره غواړئ.
او خدای پاک ویلي چې څوک زما په لاره کښې مړ شي نو هغه مړ نه دی ژوندی دی، خو تاسو په دې باندې نه پوهېږئ.
او خدای پاک وایي چې زه د صابرانو ملګری یم.

*زما ژوند او جدوجهد ، ۵۱۱ مخ*

# زموږ ملاتړ

موږ د خدای د پاره د خدای د مخلوق خدمت ته ملا تړلې ده.

که تاسو هم د خدای د مخلوق خدمت کول غواړئ او خدای رضا کوئ،

نو موږ سره په خدايي خدمتگارۍ کښې ملا وتړئ

چې دا دنيا مو هم جنت شي او اخرت کښې هم د جنت حقدار شو.

*زما ژوند او جدو جهد، ۱۱۵ مخ*



# د خپل ملک جامې او ژبه

د شپې د ټول کلي ښځې را جمع شوې. ما او حکیم صاحب ورته تقریرونه وکړل چې

ترکومې پورې تاسو د قام د پاره ملا تړلې نه ده، قوم وچتېدی نه شي

او دخپل ملک د جامو اغوستو وعدې مې ترې واخستې

چې د خپل ملک جامی به اغوندي.

*زما ژوند او جدو جهد، ۵۱۶ مخ*

د هزاري پښتنو !

زما دا خبره یاده ولرئ چې د چا نه ژبه ورکه شوې ده، هغه ورک شوي دي

او چا ته چې خپله ژبه سپکه شوې ده هغه سپک شوي دي.

تاسو خپله ژبه هېره کړې ده او تشه ژبه درنه ورکه شوي نه ده

بلکه ورسره هغه پښتو درنه هم ورکه شوی ده.

*زما ژوند او جدو جهد، ۵۱۴ مخ*





# زموږ مشر

دا تاسو چې زما د بادشاهۍ چغې وهئ نو چې دا تحريک موږ شروع کړی دی دا خو د باچايۍ د پاره نه دی چې زه دې بادشاه شم.

او که چېرې تاسو ما بادشاه کړئ نو اول خو په اسلام کښې باچايي نشته او بله دا چې ستاسو به خاورې په سر شي او زما به مزې وي.

نو تاسو پوه شئ چې نه ما او نه بل خپل باچا کړئ.

موږ باچايان جوړول نه غواړو، باچايانو ته مو ضرورت نشته.

زموږ به يو مشر وي او د قوم په رايه او مرضا او مشوره به وي او هغه سړی به وي چې هغه نېک او ايماندار او د قوم او ملک خيرخواه وي.

تکليفونه او قرباني او ډېر خدمت يې د قام او ملک کړی وي

او چې د دې مشرۍ اهليت او پوهه هم پکښې وي.

*زما ژوند او جدوجهد، ۵۲۷ مخ*




# بادشاهي

زموږ حکومت به د جماعت تابع وي، جماعت به د حکومت تابع نه وی.
بادشاهی خراب شی دی او د قوم او ملک پکښې ډېر نقصان دی.
او که چیری نن یو باچا هم ښه وی نو سبا به یې زوی باچا وي، نو څوک
ویلی شي چې ګوندې هغه به هم ښه وي. او باچایان کله د قوم ترقي
غواړي؟ ولې چې هر وخت دا خیال کوي چې که دا خلک پوه شول نو ما
به لیرې کړي، نو هغه هر وخت د قوم د پوهې لاره کښې خنډان اچوي.

*زما ژوند او جدو جهد، ۵۲۸ مخ*



# زموږ حکومت

دا ملک زموږ د ټولو پښتنو دی نو موږ یو سړی نه خان کوو.

زموږ به کوشش دا وی چې ټول خانان کړو او داسې حکومت به جوړو و چې هغه کښې مساوات وي او د ټولو خلکو په کښې یو شان خبر او فایده وي. که پوره وي او که سپوره وي، په شریکه به وي. امن وي، انصاف وي زموږ به د ټول قوم یوه جرګه وي او دهغې په خوښه به صدر وي.

*زما ژوند او جدو جهد، ۵۲۸ مخ*







# ښځو ته

دا ملک چې څنګه د سړو دی، داسې ستاسو هم دی

او دا ستاسو چې څنګه خیال دی چې سړي لوی دي او ښځه وړوکې ده، دا

په اسلام کښې نشته. لویي په عمل ده.

که ښځه بااخلاقه، نېکه او پاکه وي نو هغه لویه ده او که دغه شان یو

سړی وي نو هغه هم لوی دی. او که دغه شان یوه ښځه بد عمله، بداخلاقه

وی نو هغه وړوکې ده او که یو سړی هم دغه شان وي نو هغه هم وړوکی

دی.

په دې ملک کښې ستاسو موږ سره یو شان حصه ده.

ښځه او سړی د ګاډۍ دوه پایې دي. که یوه پنچر شي

نو ګاډۍ مخکښې تلی نه شي.

*زما ژوند او جدو جهد، ۵۳۰ مخ*





# بدل

زموږ د صبر جنګ دی. موږ به د وهلو او ښکنځلو بدل نه اخلو ، موږ به صبر کوو او ځان به خدای ته سپارو.

موږ خدايي خدمتګار يو ، خدای به زموږ بدل اخلی.

د خپلو زړونو نه خودغرضي او نفاق ليرې کړئ، ځکه چې د دې د لاسه برباد شوي يو. ځان کښې ښه اخلاق پيدا کړئ،

ولې چې د ښو اخلاقو نه بغير څوک ترقي کولی نه شي.

*زما ژوند او جدوجهد ، ۵۳۶ مخ*



# ویره

زه په دی نه پوهېږم چې تاسو ولې د پیرنګیانو نه وېرېږئ. دوی خو ستاسو په شان بنیادم دي، ستاسو په شان یو قوم دی.

تاسو خو پرو جنبو او نفاق تباه کړئ، وېره د رکښې پیدا شوې ده.

د چا په زړه کښې چې د خدای وېره وي نو د هغه په زړه کښې د بل چا وېره نه راځي او د چانه نهٔ وېرېږي

او د چا په زړه کښې چې د خدای وېره نه وي، هغه د هر چا نه وېرېږي.

ای ورونړو تاسو په زړه کښې د خدای وېره پیدا کړئ.

*زما ژوند او جدو جهد ، ۵۳۶ مخ*





# په نورو اعتراضونه

زموږ کار په چا اعتراضونه او نکته چیني نه ده

او دا زموږ کار نه دی چې په نورو جماعتونو او دهغوی په مشرانو نکته چیني او اعتراض وکړو.

زموږ کار دا دی چې موږ خپل پروګرام خلکو ته پیش کړو چې موږ ستاسو د پاره دا غواړو او دا کار یوازی نه کېږي.

دا به هله کېږي چې تاسو راسره ملګري شئ.

ملک هم ستاسې او زموږ شریک دی، قوم هم شریک دی

او کار هم شریک دی.

*زما ژوند او جدو جهد، ۶۵۱ مخ*





## مذهبونه

د ګاندي جي په زړه کښې د ټولو مذهبونو یو شان احترام و
او هغه به دا ټول مذهبونه حق ګڼل او زما عقیده هم دغسې ده.
خدای په قران کښې وایي چې ما هر قوم ته د هغوی نه یو هادي لیږلی دی.

*زما ژوند او جدو جهد، ۶۸۶ مخ*

## زما مذهب

زما مذهب رښتیا، مینه، محبت او د خدای د مخلوق خدمت دی.
مذهب همېشه دنیا ته د اخوت او محبت پیغام راوړی دی.

د کومو خلکو په زړونو کښې چې د بنی نوع انسان د پاره رواداري، مینه
او محبت نه وي او د کوم سړي په زړه کښې چې نفرت، بغض، کینه وي
نو داسې سړی د مذهب نه ډېر لیرې وي.

*زما ژوند او جدو جهد، ۶۸۶ مخ*

# لیډران او قوم

د کوم قوم لیډران زړور وي، هغه قوم کښې زړورتیا پیدا شي،

او چې د کوم قوم لیډران بزدل وي، هغه قوم کښې بزدلي پیدا شي.

*زما ژوند او جدو جهد، ۷۲۸ مخ*



# د کلي تحریک

دا تحریک د خدای د مخلوق د خدمت او انسانیت تحریک ؤ.

دې تحریک په مسلمانانو ، هندوانو، سکهانو کښی د مینې محبت او خدمت جذبه پیدا کړې وه چې پخوا یې مثال نه ؤ.

دا تحریک کلیوال تحریک ؤ، مرکز یی هم په کلي کښې ؤ. ځکه چې اکثریت قوم په کلي کښې اوسي.

د دې تحریک فرق د نورو تحریکونو نه دا ؤ چې نور تحریکونه د ښارونو نه شروع کېږي او په کلو کښې خورېږي.

مګر دا تحریک د کلو نه شروع شو او په ښارونو کښې خور شو.

*زما ژوند او جدو جهد، ۷۲۹ مخ*





# په کابل کې د هند سفير ته

افغانان، پښتانه به هېڅکله کمونيزم يا روسيه ونه مني. دوی به مړه ٔ
کېږي. څوک چې کولای شي، وطن به پرېږدي.
زه بايد د برژنيف سره خبرې وکړم. زه به هغه ٔ ته ووايم «رحم وکړه».
زه به ريګن ته هم ووايم «رحم وکړه».
کمونستان نه يوازې خلک، بلکه ونې هم په افغانستان کې له منځه وړي.
انقلاب په يو ظلم باندې اوښتی دی.

سفيره، تاسو ځوان ياستئ، خو تاسو بايد يوه غميزه وپېژنئ، اوس په افغانستان کښې داسې غميزه روانه ده.

مجاهدين د شپې وژنه کوي. روسي عسکر سهار وژنه کوي.

نتيجه يې دا ده، چې پښتون مري.

*Dixit, An Afghan Diary: Zahir Shah to Taliban* مخ ۳۰




# اندرا گاندي ته پیغام

ما تا ته په څرګنده توګه تشریح کړل، چې ټول افغانان د کمونستانو پر ضد دي. ما تا ته هم ویلي دي، چې په افغانستان کې هېڅ وخت کمونیزم حاکم کیدلای نه شي.
که جګړه دوام وکړي، د افغانستان خلک به له منځه ولاړ شي.
ته د نهرو لور یې او هم دې د ګاندي جي او دهغود ملګرو سره ژوند کړی دی، ته ما ته هم د لور په شان یې.
په افغانستان کې ماشومان، ښځې او سړي مري.
ته په خپل زړه کې هېڅ رحم نه لرې؟

*Dixit, An Afghan Diary: Zahir Shah to Taliban* مخ ۹۳
*R. Gandhi: Ghaffar Khan: non-violent Badshah of the Pakhtuns.* ۲۵۵ او ۲۵٦ پانه





# د قام آبادي

کوم قام کښې چې د خدای د پاره د خدمت خلک پاته نه شي، نو هغه قام په دنیا کښې چېرې ترقي کولی نه شي

او چې په کوم قام کښې د خدمت قدر نه وي هغه ملک چېرې آبادېدلی نه شي.

*د باچا خان لیکونه، دوهمه برخه، ۴۷ مخ*

# دین او زړه

زموږ ملک ته اسلام د اسلام په لاره رانه غی، د سیاست په لاره راغی، د ملک ګیرۍ په لاره راغی، د زور او تشدد په لاره راغی.

او په دین کښې زور نشته. بلکه هغه د زور مخالف دی.

لااکره فی الدین. ولې چې د دین تعلق زړه سره دی او زړه په زور یو شی نه قبلوي، بلکه په پوهه یې قبلوي،

نو د دین لار زور نه دی، تبلیغ دی.

*د باچا خان لیکونه، دوهمه برخه، ۷۲ مخ*

## تشدد

د تشدد وسله ټوپک دی.

عدم تشدد محبت دی. په خلقو کښې محبت پیدا کوي. صبر او همت پیدا کوي، جرت پیدا کوي،

تشدد په خلقو کښې نفرت پیدا کوي، ویره او قهر پیدا کوي او تاسې د اسلام ابتدایي او د مکې زندګي وګورئ چې هغه خو د تشدد زندګي وه. او دا څومره لوی صحابه چې په اسلام کښې وو او دا لوی لوی کارونه یې کړي دي، هغه ټول مکي وو او عدم تشدد پیدا کړی دي.

*د باچا خان لیکونه، دوهمه برخه، ۷۲ مخ*






# د جنیکو تعلیم او تربیت

زما خیال ورځ په ورځ د جنیکو تعلیم او تربیت طرف ته زیاتیږي.

ولې چې زه دا خبره د قوم د پاره خطرناکه ګڼم، چې هلکانو له خو دې تعلیم ورکړی شي او جنیکۍ دې د علم نه محروم پاته شي.

چې د دې نتیجه به دا وي چې زموږ هلکان خو به اول جاهلانو ښځو سره ودونه نه کوي او که چېرې و هم کړي، نو اکثر به یې کور سمون نه خوري او همېشه به پکښې کش مکش وي.

چې د دې نه زموږ ملک او قوم ته د یو لوی نقصان د رسېدو اندیشه ده.

*باچا خان لیکونه، لومړی برخه، ۱۵ مخ*







# د جینکو ورکول

زموږ په قوم کښې دا یوه ډېره د نقص خبره ده چې هغوی جینکۍ په

وړوکوالي ورکوي او جینکو له دا موقع نه ورکوي چې هغوی په خپله

خوښه واده وکړي او یا که نه غواړي نو نه دې کوي.

د دې متعلق زما دا رایه ده چې دا رسم هم پرېښودل په کار دي.

او هغو له پکار دي چې د ټولو نه اول خپلو بچو له تعلیم ورکړي

او د هغوی د اخلاقي تعلیم او تربیت خاص خیال وساتي

او څه وخت چې هغوی د سبق نه فارغه شي، نو د هغوی د مرضا مطابق د

هغوی په معاملاتو کښې هغوی سره د هر قسم امداد وکړي.

*باچا خان لیکونه، لومړی برخه، ۱۶ مخ*

## د ځان خاورې كول

كومه دانه چې په پټي كښې ځان خاورې نه كړي، هغه هم چېرې زرغونه شوې ده؟ هغې نه هم چېرې بوټي شوى دى؟ او د هغې نه هم چېرې دانه پيدا شوې ده؟

دانې هميشه د هغې دانې نه پيدا كېږي، چې ځان خاورې كړي.

*باچا خان ليكونه، لومړۍ برخه، ۴۶ مخ*

## اختلاف راى

اختلاف راى هميشه په خلقو كښې وي. اختلاف راى څه بد چيز نه دى. رسول اكرم ص خو د امت اختلاف راى ته رحمت ويلى دى. ليكن په موجوده وخت كښې زموږ د مسلمانانو او بيا خاص زموږ د پښتنو اختلاف راى زحمت دى.

زموږ اختلاف راى نه همېشه ذاتيات جوړېږي او د دې ذاتياتو په وجه كه چېرې د پښتنو تاريخ وګورئ، نو همېشه تباه شوي او برباد شوي دي.

*باچا خان ليكونه، لومړۍ برخه، ۵۶ مخ*





## د اوسنۍ نړۍ ساتل

اوسنۍ نړۍ په یوازني صورت تنها و تنها کولی شي چې د اتومي اسلحو د شر څخه د عدم تشدد په پیروۍ ځان وساتي.

نړۍ د ګاندي جي غوندې کسانو ته ضرورت لري چې د دوستۍ، محبت او سولې پیغام د پخوا څخه لا زیات خلکو (نړیوالو) ته ورسوي.

په دې شرط سره که واقعا هغوی نه غواړي چې مدنیت او بشریت د هغې د مخ څخه ورک شي.

*Eknath Easwaren. Nonviolent soldier of Islam,* اووم مخ،







## د خدايي خدمتګارۍ قسم

- زه خدايي خدمتګار يم او څنګه چې الله تعالی خدمت ته ضرورت نه لري، خو د ده مخلوق ته خدمت، ده ته خدمت دی. زه تعهد کوم چې بشريت ته د الله تعالی په نامه سره خدمت وکړم.
- زه ژمنه کوم چې د تشدد او همدارنګه د بدل اخيستلو څخه ځان وساتم.
- زه تعهد کوم چې هغه څوک چې پر ما تېری او ظلم کوي عفوه کړم.
- زه ژمنه کوم چې خپل ځان د تربګنۍ، جدل او شخړې څخه وساتم او په دښمنيو کې ورګډ نه شم.
- زه وعده کوم چې د هر پښتون سره لکه ورور او ملګری چلند ولرم.
- زه وعده کوم چې پر ضد د ټولنيز رسم او رواجونو، دود او دستور ونه اوسم.
- زه وعده کوم چې ساده ژوند ولرم، ښېګڼې عملي، د شيطانت او بدو اعمالو څخه ځان وساتم.
- زه ژمنه کوم چې ښه سلوک، خوی او خاصيت ولرم. د ټنبلۍ څخه ځان وساتم او وعده کوم چې د ورځې کم له کمه دوه ساعته اجتماعي (ټولنيز) کار ته وقف کړم.

My Life and Struggle, Autobiography of Badshah Khan as narrated to K.B. Narang, ۹۷ مخ





# خبرې او عمل

دا خبره زما یاده ولرئ

چې په دنیا کښې کوم قومونه چې خبرې لږې کوي او عمل ډېر،

نو هغه قامونه همېشه خپل منزل ته رسیدلي دي.

زه تقریر نه کوم زما په تجویذ غور وکړئ.

*زما ژوند او جدوجهد، ۳۶۷ مخ*






## ځان وپېژنئ!

خپل ځان وپېژنئ !

خپل خدای وپېژنئ !

او خپل دوست او دښمن وپېژنئ !

بس نور څه ولیکم ؟

الله تعالی دې موږ ټولو له صبر او استقلال راکړي

او د خپل مخلوق د خدمت توفیق او طاقت دې راته عطا کړي.

*باچا خان لیکونه، لومړی برخه، ۱۲۵ مخ*







# ماخذ:


۱. عبدالغفار ، زما ژوند او جدو جهد. ۱۳۶ هجری شمسی، کابل-دولتی مطبعه

۲. پښتون مجله، اتمه ګڼه، ۱۹۹۲ م ، پېښور

۳. ایکنات سوارن، حضرت باچا خان-ژوند او فلسفه، ترجمه غني خټک، ۱۹۹۳ م اسلام آباد

۴. عبدالله بختانی خدمتګار، د باچا خان لیکونه، دوهمه برخه، دانش خپردویه ټولنه، پېښور، ۱۳۸۴ کال

۵. عبدالله بختانی خدمتګار، د باچا خان لیکونه، لومړی برخه، کابل،دولتي مطبعه، ۱۳۶۳ کال

۶. ارشادات و مکتوبات باچې خان ، سید جاوید علی شاه آف نرشک ، کلاسک پبلشرز نو ښار

1. Abdul Ghaffar Khan; faith is a battle
   Dinanath Gopal Tendulkar, Published for Gandhi Peace Foundation by Popular Prakashan, Bombay, 1967
2. Eknath Easwaren. Nonviolent soldier of Islam, Nilgiri press, USA 1999
3. Rajmohan Gandhi. Ghaffar Khan: non-violent Badshah of the Pakhtuns. Viking, New Delhi, 2004
4. J.N. Dixit, An Afghan Diary: Zahir Shah to Taliban, New Delhi: Konark Publishers, 2000
5. My Life and Struggle, Autobiography of Badshah Khan as narrated to K.B. Narang, Orient Paperback, Delhi, 1969

# د افغانستان معلوماتي مرکز (افغانیک)

افغانیک د هېوادوالو، ټولنو او بهرنیو خلکو لپاره د افغانانو او افغانستان په هکله معلومات وړاندې کوي.

## آرشیف:

د افغانستان معلوماتي مرکز د ټولو مهمو ټولنیزو، تاریخي، سیاسي، اقتصادي، ادبي او روغتیایي ساحو او پوښتنو په هکله په خپل آرشیف کې معلوماتي مواد (کتابونه، مجلې، اخبار، کستونه) راغونډ کړي دي. دغه مواد په دوو لړیو کې راوستل شوي دي: ۱ -څوک څوک دی ؟ ۲- څه څه دي ؟
د موادو لست په انترنیت پاڼه(www.afghanic.org) کې کتلای شئ.

## خپرونې:

۱ - د بشر د حقوقو عمومي اعلامیه
۲ - د افغانستان اساسي قانون ۱۳۴۳کال
۳ - د افغانستان اساسي قانون ۱۳۴۳کال په الماني ژبه
۴ - د افغانستان اساسي قانون ۱۳۸۲
۵ - د افغانستان اساسي قانون۲۰۰۴په انګلیسی ژبه
۶ - زموږ د باچا خبرې

سربېره پر دې افغانیک اوس پر دې باندې کار کوي چې د افغاني ټولنې د بنسټیزو پوښتنو په هکله مستند او علمي معلومات راغونډ او بیا یې د نورو د خبرتیا او د ګټو اخیستلو د پاره خپاره کړي.

## اړیکې او معلومات:

**AFGHANIC**
**Visitor´s address:**
Justus-von-Liebig-Str 24
53121 Bonn; Germany
Tel +49 228-409 76 30
Fax +49 228-409 7639

**Post address:**
Post Box 1327
53003 Bonn, Germany
info@afghanic.org
www.afghanic.org

# Quotations of Badshah Khan
# Badshah Khans Zitate

Collected by / Gesammelt von
Yahya Wardak

## یادونه

موږ په دغه لاندې کتابونو هم کار کوو:
۱. زموږ د باچا خبرې، دوهمه برخه
۲. د باچا خان په هکله د نورو خبرې
۳. باچا خان، عدم تشدد او په افغانستان کې د سولې لارې (د مقالو ټولګه)
۴. د باچا خان کتابښود
هیله من یو، چې د دغو خپرونو په لیکلو او چاپولو کښې زموږ سره خپلې مرستې ونسپموئ.
د افغانستان معلوماتي مرکز (افغانیک) آرشیف کې د باچا خان برخه جوړه او دلته معلوماتي مواد (کتابونه، لیکنې، د مجلو او اخبارونو کټنګ، عکسونه او فلمونه) راغونډ او د څېړنو او خپرولو لپاره علاقمندانو ته وړاندې کېږي.
د هېواد والو څخه هیله کېږي، چې په دې کار کې له موږ سره شریک شي.

*یحیی وردک, wardak@afghanic.org*
*د بن ښار ۲۰۰۸، نومبر*